وسیلوته اورورته کړ. (جنګ)

۴۳۲ـ انګلستا ن،چین،فدرالی آلما ن ، جاپا ن او ایران لەروس نەوغوښتل چې له افغانستا ن نەدخپلوقوا ؤدوتلولەپا رەیو مها ل ویش وړا ندې کړی.پەزرها وکسا نوپه نوی ډیلی کښې پرافغانستا ن باندې دشوروي دتیري دشپږمې کلیزې لەاملەمسا لمت آمیزې مظا هرې وکړې.خلکودډاکې پەوا ټونوکښې مارش وکړاولەافغانستا ن نەیې دشوروي قوا ؤوتل وغوښتل.پەاسلام آبا دکښې پەسلها وافغانی مها جرینوپەدا سې حا ل کښې چې دشوروي پرضد یې شعارورکاوەغوښتل چې دهغەهیوا دسفارت پرلورمارش وکړي خودپاکستا ن پولیسوهغه وا ټ چې دشوروي سفا رت تەتللی ؤوتاړه .

(ډا ن)

۴۳۳ـ هغەبشردوستا نەمرستې چې دملګرو ملتودمها جرینودلوی کمشنراونوروټریوا لو سا زمانونولەخوا لەافغانی مها جرینوسره کیږي پەتیرودووکلونوکښې پەسلوکښې دیرش کمې شویدي.پاکستا ن اوس ـ اوس هرکا ل پنځوس ملیون ډالرەلەمرستەکوونکوڅخەترلاسەکوي دا هیوا ددهمدې پیسوپەاندا زەهرکا ل لەخپلې بودجې څخەدمها جرینوپەپا لنەلګوي. (مسلم)

## ۸

۴۳۴ـ دامریکې دسنا یوەغړي بل بدرلی پەهغەمقا لەکښې چې پەنیویارک ټا یمزکښې یې خپرەکړې لەامریکې نەیې لەمجا هدینو سرەدمرستې جدي غوښتنەکړیده .دەویلي:چې مقا ومت نەیوا زې دیوەاوږدەچریکي جنګ د ـ صلاحیت اوتوا ن نودلولەپا رەپەلارەلویدلی بلکەدمتقا بلەبریدونودنویوطریقوپەکار اچولولەپا رەپرمخ بیول کیږي.

(پاکستا ن ټا یمز)

## ۹

۴۳۵ـ دفرانسی دولت پرون دروس لەخوا دافغانستا ن نیول کیدل محکوم کړی اودـ افغانستا ن دموضوع پرسیا سي حل یې ټینګا ر وکړ. (پاکستا ن ټا یمز)

## ۱۰

۴۳۶ـ دانګلستا ن صدراعظمې میرمن مارګریت تاچرویلي دي چې دافغانستا ن پەاړەلەببرک کارمل سرەدخبروکولوهیڅ اړەنه نەلیدلەکیږي،ځکەداسې خبرې بەدکابل د لاس پوڅي رژیم دپەرسمیت پیژندلوحیثیت واري.

(نوایی وقت)

## ۱۱

۴۳۷ـ دامریکې دبا ندنیوچا رووزارت وايي چې لەافغانستا ن نەدشوروي قوا ؤدوتلو لەپا رەدیوەمها لویش وړاندې کول یومثبت تحول دي خوپەدې برخەکښې کوم توافق ترهغه وختەنشي کیدلای چې ټول اړخونەپەیوەهر اړخیزتړون سرەسلانەشي.

۴۳۸ـ دریګن اوګوربا چوف دنومبردخبرو پەترځکښې دافغانستا ن مسألەپەتفصیل سره پەژنیوکښې تربحث لاندې نیول شوې وە ،ویل کیږي چې ریګن دخبروپەنتیجەکښې پەدې عقیدەدي چې ګوربا چوف دافغانستا ن دمسألې دیوەسیا سي حل سرەعلاقمنددي.

(نیویارک ټا یمز)

## ۱۲

۴۳۹ـ دافغانی مجا هدینوا ودخیبر ایجنسۍ د۱۵۵ تنووسلەوالوقبا یلیا نوترمنځ چې پەوراندونکوعملیاتوکښې لاس لري ،له تورخم سرەنژدې سختەجګړەشوې دە ،ددوەاړخیزو دزوپەنتیجەکښې شپږتنەقبا یلیا ن اواتەتنه مجا هدین مړەشوي دي.۹۶تنەقبا یلیا ن لەخپلې ورسرەوسلې سرەدمجا هدینولەخوا نیول شویدي.

(جنګ)

## ۱۳

۴۴۰ـ دافغا ن مجا هدینودا ووەګونی ائتلاف ویا ندسیدا حمدګیلانی ویلي دي چې: ائتلاف تصمیم نیولی چې یوا ووەکسیزهیئا ت دا سلامي هیوا دونوپەکنفرا نس کښې دګډون له پا رەمراکش تەولیږي.دا هیئا ت بەهڅه وکړي چې پەنوموړی سا زما ن کښې دافغانستا ن د سما یندګي څوکۍ ترلاسەکړي.

## ۱۴

۴۴۱– درا ویوتهران دراویودرپوټ له مخې افغان مجاهدینو د۱۲ ورځنی ټینګ مقاومت له امله دهرات ښار محاصره ماته کړه .په نتیجه کښې مجاهدینو ۱۰ شوروي ټانکونه ویجاړ کړل او پنځه نوري روغ ونیول.

(پاکستان ټایمز)

۴۴۲– دشوروي دپراوداورځپاڼې اعتراف کړی چې په افغانستان کښې ملی روغه دمختلفوسیاسي اقشارو ترمنځ په جوړښت سره لاس ته نشي راتلای . (پاکستان ټایمز)

۴۴۳– دپاکستان دباندنیوچارووزیر صاحبزاده یعقوبخان ویلي چې دافغانستان جنګ دټولي اسلامي نړۍ مسأله ده .ده څرګنده کړه چې په دې برخه کښې دده هیوادخپل سیاست داسلامي هیوادونودټولني دکنفرانس له دریځ سره سم برابر کړي دي. (نوایی وقت)

## ۱۵

۴۴۴– دافغانستان مقاومت چې دخپل ډول له مخې په معاصرتاریخ کښې ساری نه لري، دپاکستان له خوایي ملاتړ کیږي .پاکستان یوکوچنی اوکمزوری هیواد نه دی اوپریمانه منابع لري.دافغانستان جهاد دااسلامي غورځنګ دبیا ژوندی کولو یو سمبول دی او هیڅ خارجي عنصردخلکودا مقاومت نشي ماتولای، حتی که دپاکستان ملاتړهم تری واخیستل شي داجهاد به غلی نشي.په دې برخه کښې باید لاندې ټکی په نظرکښې ونیول شي:

۱– دافغانستان جهاد دپه افغانی ټولنه کښې یوجدي تحول رامنځ ته کړی چې له یوی تجربې څخه تیریږي.

۲– دالوی اوښتون،په افغانی ټولنه کښې یونوی ځواک رامنځ ته کوي چې هغه دایمان او عقیدې ځواک دي.

۳– داجهاد افغانی ټولني ته چې له بیلابیلوقومونوڅخه جوړه ده اتحاد اویووالی وربخښي.

۴– اوس دی جهاد دمختلف اوسره بیل عناصر په یوه واحدوجود کښې په یوه ټوټه او نه بیلیدونکي ډول سره یوځای کړي دي.

(مقاله ،پاکستان ټایمز)

۴۴۵– دپاکستان صدراعظم محمدخان جونیجو ددې هیواد په پارلمان کښې دخپل حکومت دسیاست په باب په واضح ټکوکښې وویل چې پاکستان هڅه کوي څودافغانستان په مسأله کښې خپل دشاپه شا خبروسیاست پرینږدي... که پاکستان په خپل اصولي دریځ کښې کوم سازش کړی وای په هغه صورت کښې به نه یوازې ددې هیواد امنیت له خطره سره مخامخ کیده بلکه په نړیواله ټولنه خصوصاً اسلامي ټولنه کښې به یې خپل باوراو حیثیت له لاسه ورکاوه .دهمدې دلیل له مخې مبصرین عقیده لري چې پاکستان به له افغانستان نه دشوروي قواؤدوتلو د هدف له پاره هیڅکله هم چمتونشي چې له کابل رژیم سره مخامخ خبرې وکړي .(جنګ اوپاکستان ټایمز)

## ۱۶

۴۴۶– دافغانستان په چاروکښې امریکایی متخصص پروفیسرتاماس ګاتریر ،وایي : چې افغانان مکلف دي چې دخپل هیواد خپلواکي بیا ترلاسه کړي ځکه هغوی دخپل مقاومت له غورځنګ سره تعهدلري .ده وویل:چې دافغانانو دهیوادپالني احساس له مذهب سره دهغه دتړون په ګډون ،بالاخره دروسانوتلل یقیني کوي. (مسلم)

۴۴۷– یونامتوامریکایی متخصص تاماس ګارتریر عقیده لري چې شوروی غواړي دپاکستان ځیني برخي ونیسي اوله افغانستان سره یې وتړي او په عوض کښې یې دافغانستان ځیني برخي ترخپل تسلط لاندې وساتي، ده زیاته کړه روسانودواخان دهلیزپخوانیولی چې اوس یې له پاکستان سره پوله نښتې ده .

۴۴۸– ویل کیږي چې افغان مجاهدینو دروس څلورجنګي الوتکي اویوهلیکوپټرچې ددښمن دګډوقواودبریدپه ترڅ کښې یې پر کندهاراوورزګان بمباري کوله ،راغورځولي

دي.په دې سربیره دوی سرسلو نوزیات کمونستي عسکروژلي او ۲۰ ټانکونه او نظامي موټرې له منځه وړي دي. (پاکستان ټایمز)

## ۱۷

۴۴۹– اووه تنه افغاني مهاجرین دحرکت انقلاب اسلامي دیوه قوماندان محمددادو په څیر دپښور او هنگو کښې دد ووسله والو لوښتو په ترخ کښې وژل شوي دي. (ډان)

۴۵۰– یو سیاسي مبصر په پاکستان ټایمز کښې دیوې تبصرې په ترخ کښې لیکي: چې دا افغانستان جنګ دشوروي دحلکو ترمنځ نا منلي دي دشوروي خلک هغه زیات لګښت هم چې په دې جنګ کښې کیږي نه مني. په همدې وخت کښې نورو هیوادونو ولې دې ولې خه چیني او جاپان په افغانستان کښې دروسي قواؤد موجودیت په باب خپله اندیښنه ښودلې ده. دهمدې علتونو له مخې دا افغانستان قضیه دشوروي له پاره دیوه سخت وضعیت په توګه را منځ ته شوې ده.

۴۵۱– دآلمان عررا ډیودریوټ له مخې دامریکې او شوروي دمنرانو دژنیو ترغونډې وروسته شوروي په افغانستان کښې خپل جنګي عملیات سخت کړي دی. راډیو دلوبدیځ آلمان دپارلمان دیوه غړي بوګن نوری له خولې وایي په ژنیو کښې دامریکا او شوروي ترسرمشریزې وروسته چې په تیرنو مسرکښې وشوه، ترشل زروتنو زیات افغاني اتباع وپاکستان او ایران ته مهاجرت کړی دی. (پاکستان ټایمز)

## ۱۸

۴۵۲– دبي بي سي دریوټ له مخې دافغان مجاهدینو ودخیبرایجنسي داپریدي یاغي قبایلو ترمنځ په جګړه کښې څلورمجاهدین شهیدان او اته تنه قبایلیان مړه شوي دي. (ډان)

۴۵۳– دشوروي له خوا دافغانستان دشپږ کلني نیونې یوې خبرنې څرګنده کړې چې شوروي ړندي توانیدلي چې حتی دخپل نظامي تیري ترشپږ وکلونو تیریدو وروي همدا افغانستان خلک وځپي. ریوټ وایي چې موجوده نظامي وضع دمجاهدینو وروسا نو ترمنځ دجنګ په شدت تعبیرولای شو.

۴۵۴– دپاکستان دبا ندنیو چارو وزیر صاحبزاده یعقوب خان دمراکش دفیض په ښار کښې داسلامي هیوادونو دباندنیو چارو دوزیرانو په کنفرانس کښې ویلي دي چې دا افغانستان د خلکوجنګ دټولې اسلامي نړۍ مبارزه ده. – وویل چې په افغانستان کښې دشوروي دوا مداري مداخلې اسلامي نړۍ له جدي خطرسره مخامخ کړې ده. یعقوب خان زیاته کړه: مورله خپل دې تصمیم نه چې نه دنا پیلتوب دغورځنګ دملګرو ملتو دټولنې او داسلامي کنفرانس له پریکړه لیکونو سره سم له افغانستان نه دشوروي قواؤوتل دي، هیڅوک نه شي اړولی. (پاکستان ټایمز)

۴۵۵– عربي دیپلوماتانو ویلي چې د کابل رژیم مجاهدینو خپل څلورتنه جنرالان. دروسي قواؤ په اړه مجاهدینوته دجنګي اطلاعاتو دورکولو په تور، توقیف کړي دي.

(نیویارک ټایمز)

۴۵۶– شوروي دهغه ترون له مخې چې شاید وروسته لاسلیک شي غواړي دا افغانستان شمالي سیمې له خپلې خاورې سره ونښلوي او په هغه صورت کښې به موافقه وکړي چې له افغانستان څخه ووزي. دامریکایي متخصص تامس ګوبتری دوینا له مخې شمالي افغانستان به دپریمانه معدني موادو او وبودرلودلو له امله دشوروي له پاره یوه ښه پانګه وي چې دخپلو آسیایي جمهوریتونو دپرمختګ له پاره کارترې اخیستلای شي. (سعودي ګزټ)

## ۱۹

۴۵۷– دافغان دمجاهدینو مشرانو دشوروي له تسلط نه دخپل هیواد دآزادولو، دهغه هیواد داسلامي اونا پیلې حیثیت ترلاسه کولو له پاره دبریالیتوب ترسرحده پورې دخپل جنګ د دوام پیاوړی اراده څرګنده کړې ده. دا مطلب سید احمد ګیلاني داسلامي هیوادونو دخارجه وزیرانو په کنفرانس کښې دمراکش دفیض په ښار کښې څرګند کړ. (مسلم)

۴۵۸ـ دشوروي دکمونست گونددتیریوالو چارودکمیټي مرستیال ویلي دي چي کویټ اونورعربي هیوادونه کولای شي پرامریکا او پاکستان باندې زوروا چوي څودافغانستان مسأله دهغې وړاندیزله مخي چي دکابل رژیم کړی ،حل اوفصل شي. (نوایی وقت)

۴۵۹ـ نن په یوه مطبوعاتي کنفرانس کښي دچین دباندنیوچارووزارت یوه ویاندوویل: چي چین له کابل رژیم سره دپاکستان دشا په شا خبرو ملاتړکوي .ویاندخرگنده کړه چي دشوروي او کابل رژیم دا ټینګارپي ګمانه دي چي ګواکي دشوروي قواؤدوتلو مسأله په مخامخ خبروکښي تربحث لاندې نيول کيدای شي.

۴۶۰ـ دتهران راډیودرپوټ له مخي مجاهدینودشوروي یولوی جنرال تیره هفته دازګان په ولایت کښي نیولی دی .راډیوویل چي مجاهدینودکندهار ښارمحاصره کړی دی.

(پاکستان ټایمز)

۴۶۱ـ دفرانسي خبري آژانس رپوټ ورکړی چي مجاهدینودغورولایت په شهرک برید وکړچې دهغې په ترڅ کښي یې ۳۰ شوروي عسکر وژلي اوپوټانک لەغلوروالاریو سره له منځه ولاړ. (نوائی وقت)

## ۲۰

۴۶۲ـ دجمهوري کوریا مقاماتو ۲۰ عرادې جیپونه دهغې لەفالتوپرزوسره چي ۲۱۹ زره امریکایي ډالره بیه لري افغان مجاهدینوته وربخښلي دي. (پاکستان ټایمز)

۴۶۳ـ دملګرو ملتودخوراک اوکرنې نړیوال سازمان اعلان کړی دی چي په ۱۹۸۶ کال کښي دافغانی مهاجرینولپاره ۱۶۰ زره ټنه غنم چي ۲۹۸ ملیون ډالره بیه لري تهیه کوي.

(جنگ ، پاکستان ټایمز،نوائی وقت)

۴۶۴ـ دمراکش دفیض په ښارکښي دا سلامي هیوادودباندنیوچارودوزیرانوپه کنفرانس کښي زیات شمیرګډون کوونکوهیوادونودافغانستان دخلکودهغې مبارزي ملاتړوکړچي دخپل اسلامي هویت دراګرځیدلوا ودهغه هیوادد ناپییلتوب لپاره یي کوي .دوی په دې کنفرانس کښي دخپلوخبروپه ترڅ کښي له افغانستان څخه دشوروي قواؤدفوري اوبې له قیداوشرطه وتلوغوښتنه وکړه. (مسلم)

۴۶۵ـ دری اساسي عنصردديې سبب شوي چي دافغانستان مسئله دا سلامي هیوادودباندنیو چارودوزیرانو په کنفرانس کښي ترهرڅه وړاندې تربحث لاندې راشي ،هغه عناصردادي: (۱)دافغانستان دخلکوله هیلونه دا سلامي تولنې دوامداره ملاتړ (۲) دکابل رژیم په رسمیت نه پیژندل (۳) دمجاهدینودااجازه لرل چي د اسلامي هیوادوپه کنفرانس کښي خپله داعیه طرح کړي اوخصوصاً کنفرانس ته دپاکستان دباندنیو چارودوزیرصاحبزاده یعقوب خان موشرطرح کول. (پاکستان ټایمز)

۴۶۶ـ پرافغانستان باندې دشوروي دتیري دشپږمې کلیزی له امله دلندن په ښار کښي یوه لویه مظاهره وشوه چي زیات شمیر افغانانواودوی حامیانو په هغه کښي درلوده. مظاهره کوونکوچي دشوروي ضدشعارونه له ځانه سره لرل دشوروي دسفارت په وړاندې شعارونه ورکول،هغوی له افغانستان نه دشوروي قواؤ فوري وتل وغوښتل. (نوائی وقت)

## ۲۲

۴۶۷ـ دا سلامي هیوادودباندنیوچارو وزیرانوکنفرانس له هغوهیوادونواوسازمانونو نه کتنه وکړه چي له افغاني مهاجرینوسره مرسته کوي. (پاکستان ټایمز)

۴۶۸ـ دپاکستان دباندنیوچاروپخوانې وزیرآغاشاهي ویلي دي چي دملګرو ملتو منځګړی کوردوویزدافغانستان دمسئلي دحل اولدافغانستان نه دشوروي قواؤدوتلوپه برخه کښي درامنځ ته شوي خنډلري کولولپاره مهم نقش ترسره کولای شي. (نوائی وقت)

۴۶۹ـ دا سلامي هیوادودباندنیوچارو دوزیرانوکنفرانس دمراکش دفیض په ښارکښي دافغانستان دموجودي وضعي په باب یوپریکړه لیک تصویب کړ .په دې پریکړه لیک کښي له افغانستان نه دروسي قواوُبې قیداوشرطه وتل دخپل ځان لپاره دسیاسي اواقتصادي سیستم د

تیا کلو په لاره کښي دا فغا نستا ن خلکو ته حــــــق ورکول .له پا کستا ن ا وا یرا ن نه ترخلور ملیون زیا تو ا فغا نی مها جرو آبرومندا نه ستنیـــــــــدل غوښتل شوی دی.پریکړه لیک ددي قضیي پــــــر مسا لمت آ میزحل ا وفصل با ندي ټینګا رکـــــــړی دی. ( مسلم )

## ۲۳

۴۷۰– دا مریکي متحده ا یا لات بهر نیو چا رو وزارت ویاند ویلي دي ...

۴۷۰– دا مریکي متحده ا یا لات بـه لـــــــــه ا فغا نی مها جـرینو سره خپلو بشردوستا نـــــــه مرستو ته دوا م ورکوي.دا مطلب دا مریکـــــــي د کا نګرس دهیئا ت یوه غړي دپیښور په یوه بیــره کښي دمها جرینو دیوه کمپ دکتلو په ترخ کښـــي څرګند کړ . ( پا کستا ن ټا یمـز )

۴۷۱– دا سلامي هیوا دو دبا ندنیو چــا رود وزیرا نو کنفرا نس دیوه پریکړه لیک په ترخ کښي له ا فغا نستا ن نه دشوروي قوا ؤ بی قیدا وشرطـه وتل وغوښتل .کنفرا نس همدا رول دا فغـــــا نستا ن دمسئلي په ا ړه دپا کستا ن ا وا یران ملاتړ ا علان کړ . ( جنګ )

۴۷۲– دپا کستا ن جمهوررئیس جنـــرا ل محمدضیا ء ا لحق وا یی:چي دده هیوا ددا فغـــا نستا ن دمسئلي دسیا سي حل غوښتونکی دی .ده وویل:دا فغا نستا ن خلک با ید په خپله خپل ســر نوشت وټا کي . ( مسلم )

۴۷۳– دا یرا ن جمهوررئیس سید علـــــــي خا منه ا ی ویلي چي دا فغا نستا ن دمسئلي دحـل یوا زینی لارله ا فغا نستا ن نه دشوروي قوا ؤوتل دی څودا فغا نستا ن خلک پخپله وکړا ی شي خپـل سیا سي ا وا قتصا دي سیستم په لاس کښي وا خلي. ( جنګ )

۴۷۴– وا چمن په هغه مقا له کښي چې دوا ن په ورځپا ڼه کښي یې خپره کړي وا یي: دا فغـــا نستا ن جګړه با لاخره دپا کستا ن په ولوته را لیـږ دیدلي ده .دبمونوا وما ینونو چا ودل دخلکو پـه ژوندکښي یوه عا دي پیښه ګرځیدلې.په ا فغـــا نستا ن کښي له تحولاتوسره دا سي وضع را منځ ته کیږي ،دا سي وخت به را ورسیږي چي موږ و نــــه کړا ی شو له دي بحرا ن څخه ځا نونه خلاص کـــړو . زموږ دیمنا ن وا یي چې زموږ خا رجي سیا ســــت دمتحده ا یا لاتو له ګټو سره سم طرح کیږي.هغــــوی وا یي څوچې وا شنګتن دوړا ندي تګ لپـــــا ره ا شا ره ونه کړي پا کستا ن صلاحیت نه لري چي په دې مسئله کښي ځا نګړی نوښت را منځ ته کړي. ( ډا ن )

۴۷۵– دا مریکا غړدر پوټ له مخې دکا بـــــل رژیم پرا ویوا وتلویزیون با ندي دشـــــــوروي نفوذزیا ت شوی دی چي دی کا رهغوی دشـــوروي دسیا ست دکا سه څټونکو په توګه ګرځولي دي نـــو ځکه دکا بل رژیم درا ډیوتلویزیون پـه بــــــا ب تصمیمونه دروسي مشا ورینوا وکمونیست ګوندد سیا ست له مخې نیول کیږي. ( پا کستا ن ټا یمز )

## ۲۴

۴۷۶– دفرا نسې دخبر رسولو آژا نس د رپوټ له مخې ا فغا ن مجا هدینو دشوروي یوتـــــوپ لرونکی هلیکوپټر دزا بل په ښا رصفا کښي لـــه ځمکې نه هوا ته توغوندي په وسیله را نسکورکـړی دی.په دی بریدکښي ددی هلیکوپټرسپرلـــي وژل شوی ده . ( نوا ئــي وقـــت )

۴۷۷– ا فغا ن مجا هدینو دکا بل رژیم یــوه جې ا لوتکه دپکتیا په ولایت کښي را نسکوره کـړې ده وهمدا را زیې یوروسي صا حب منصـــــب د ننګرها ر په ولایت کښي ژوندی نیولی دی.ا فغا ن مجا هدینو دهرا ت په ولایت کښي دکا بل رژیم پـر یوه نظا می ا ډه با ندي دبرید په ترخ کښـــــي د دښمن ۱۵۰ تنه عسکر وژلي ا ودهغوی بوشمیـــر ټا نکونه یې وسوځول. ( پا کستا ن ټا یمز )

۴۷۸– دوا شنګټن پسټ دورځپا ڼې خبریا ل جیمزرا برټ دیوه را پورپه ترخ کښي وا یي چــې دا فغا نستا ن دمجا هدینو مشری دځوا نا نو په لاس کښې ده .دی وا یي چې دمجا هدینو قوما نـدا ن هم تر ۳۱ کلونیکښته ا وتر ۴۰ کلو پورته نه دي. ( جنګ )

۴۷۹– دکا بل رژیم خا دیا خپله دپټـــــــو پولیسو دستګا ه وزا رت ته لوړه کړې ده .جــي دا کا رظا هرآ دهیوا ددا منیت لپا ره یوه هڅه بلل ـــه کیږي.

۴۸۰– دا یرا ن جمهوررئیس سید علـــــــي خا منه ا ی ویلي چي په ا فغا نستا ن کښي دسولـــي

یوه‌برخه‌وي. ( بی.بی.سی.فارسی)

# ٦

۴۰- مجاهدینودګډوقواؤ۱۴ عسکردجوزجان دولایت په‌سرپل‌کښي ووژل،دیوبل رپوټ پر اساس افغاني مجاهدینودفاریاب دولایت په شیرین‌تګاب‌کښي دکابل -شوروي دقواؤپه‌یو کاروان باندې دبریدپه‌ترځ کښي دکمونستي قواؤاته‌عسکروژلي دي. ( دتهران راډیو)

۴۱- دافغانستان دمقاومت منابع وایي چي مجاهدینودافغانستان په‌ختیځ کښي پرګډو قواؤباندې دبریدپه‌ترڅ کښي له سلوځخه زیات‌کمونستي عسکروژلي اوا ووه‌شوبلی یی له‌منځه‌وړي دي وېل کیږي چي پدې جګړه‌کښي ددښمن ۳۰۰ ټانکونه‌اوشوبلوبرخه‌درلوده .پدی نښته‌کښي ۲ مجاهدین شهیدان شوي دي.

همدارازدکابل درژیم ۱۱ تنه‌عسکروروسته لدې چي خپل دوه‌تنه‌صاحبمنصبان یې ووژل په کنړکښی دبریکوټ دقشلی له‌ګارنیزبون ځخه وتښتیدل. ( درياض راډيو)

۴۲- تاس ویلي دي :ګوربا چوف ددې هیوا ددعالی شورا په‌غونډه‌کښي وویل: مونږ تل دافغانستان دآزادی،ناپیلتوب اوپه هغه‌هیوادکښي ددا سي یورژیم ملاتړکووچي د بهرني لاس وهني دپای ته‌رسیدوضمانت وکړای شي. ( دمسکوراډيو)

# ۷

۴۳- احمدشاه‌مسعوددیوپیغام په‌ترڅ کښي رپوټ ورکړی چي دده مجاهدینوتیره‌اوونۍ په پنجشیرکښي دحکومتي قواؤاډه‌د۱۰۷ ملیمتري توغندیوتراورلاندی ونیوله‌چي حکومتي قواؤ ته‌یي زیات‌ځاني اومالي تلفات وروا ړول او نوموړې اډه‌یي داورخوراک کړه.پدې عملیاتو کښي یوروسی مشاوروژل شوی دی.دټانک دعملي څوتنه‌مړه‌شوي اوددښمن نه‌دفاعي پوستي له منځه‌تللي دي اته‌صاحب منصبان او۲۲ عسکر مجاهدینوژوندي نیولي دي.په‌بدل کښي شوروي جټ الوتکواونوپ لرونکوهلیکوپټرونوپرسیمي سخته‌بمبا ري پیل کړې اوډیرشمیرعسکریې

پدی سیمه‌کښي پلي کړي چي له‌مجاهدینوسره‌یي سخته‌جګړه‌نښلولې ده. ( دامریکا غږ- دری)

# ۸

۴۴- دمجاهدینوپرضدسخت عملیات دلړم په‌پنځمه‌په‌هرات کښي پیل شول،دکابل مقاماتو دهرات خلک پدې پلمه‌چي مهمی وینا وې واوري دهرات جامع جومات ته‌راوبلل خوبی له‌ځنډه‌د شورویانودتوپخانې یوې پوستي دجومات په دننه‌کښي دخلکوپه‌ټولنی نا ببره‌ددرندوګولیو اورول پیل کړل چي له‌دې امله ۸۰ تنه‌شهیدان او څه‌ناڅه ۱۵۰ تنه‌ټپیان شول.دهرات جومات ته‌چي ۱۲۰۰ کاله‌عمرلري اودافغانستان له مقدسوځایونوځخه‌دی،ددی بریدپه‌نتیجه‌کښي درونددتاوان وراوښتی دی.دکابل اوشوروي خبري منابعومجاهدین تورن کړل چي په جومات باندې یې ګولۍ اورولي دي.ډاکتر امین حیدرچي کوټی ته‌راغلی دی وویل : وروسته‌لدې چي جامع‌جومات یې تربریدلاندې ونیو، شوروي الوتکواوتوپخانې دهرات په ښاراوښاوخواکلیوباندې ددری ورځولپاره بمباري پیل کړه‌اوګډوعسکروهرات د۱۵ ورځو لپاره‌کلابندکړ. ( دامریکا غږ- دری)

۴۵- تاس دتبصرې په‌ترځ کښي وویل:د شوروي اوامریکا دمشرانوکتنه‌په‌ژنیوکښي ددې بنکارندوی ده‌چي شوروي اتحاد په‌صمیمانه توګه‌دسولي لپاره‌دافغانستان دمشربرک کارمل دکوښښونوملاتړکوي. ( دمسکوراډيو)

۴۶- دشوروي اتحاددعالی شورا رئیسه هیئت لومړي بریدمن نیکولای کازسوف ته‌دده دنهامت له‌امله‌چي دافغانستان په‌کونړکښي په‌جګړه‌کښي وژل شوي،دقهرمانۍ نښان ورکړی دی. ( دمسکوراډيو)

# ۱۰

۴۷- دنیویارک په‌ښارکښي دکولمبیاد پوهنتون دسیاسي علوموا ستاد دآسیا دجنوب متخصص زلمی خلیل زاد وایي :دشوروی قواؤ پواسطه‌دافغانستان نیولودهنداوپاکستان دامنیت په‌باب ددوی په‌نظریاتوکښي اساسي

لپا رەعدالت تپینګول یوەحیاتي موضوع دە نوموړی پەا سلامآ با دکښې پەیوەمیلمستیا کښې لەا فغا نستا ن نەدخا رجي قوا وُبی لەځنوەوتل خپل هیوا دتەدمها جرینوپەعزت ستنیدا. د ا فغا نستا ن دا سلامي حیثیت خوندي کیدل ا و د خپل سرنوشت ټا کلولپا رەدا فغا نستان خلکوتە حق ورکول وغوښتل.
( ډا ن )

۴۸۱ــ دا فغا نستا ن دچا روا مریکا یی متخصص تا مس ګوتیری وا یي چې جنګ بەپەدې هیوا دکښې پە ۱۹۸۶ کا ل کښې پا ی تەونە رسیږي ا ومجا هدین بەپەا فغا نستا ن کښې تر خپل کنترول لاندې سیمې پرا خې کړي دە. څرګندەکړە :چې شوروي هغەلوړقیمت تەچې د ا فغا نستا ن موضوع ورتەپری تما مەشوي اوس متوجەشوی ا وپەورو ،ورویې ا حسا سوي ا و دا هیوا دبەلەا فغا نستا ن نەخپلې قوا وې دا سې وخت وبا سي چې دي نتیجې تەورسیږي چې د ا فغا نستا ن نیول یې لەتوا نەوتلی دی.ګوتری لەهغوا قدا ما تونەچې ددې مسئلې پەا ړەد ا سلامي کنفرا نس لخوا کیږي نا را ضەدی ا و ویلی یې دی چې دا سا زما ن دروسا نوپەمقا بل کښې دجهاد علان نەکوي.
( مسلم )

۴۸۲ــ جیمزرا برټ دخپلومضا مینوپەلړ کښې دا فغا نستا ن دجنګ پەباب لیکي چې پە ا فغا نستا ن کښې لەا نکا رنەکیدونکوورا نیو سرەسرەدهغەهیوا دکلی ښیې چې دا فغانی ټولنې جوړښت ترا وسەپەخپل حا ل پا تي دي،دی پەپا ی کښې نتیجەګیری کوي چې دی جنګ دا فغا نستا ن دخلکوپەمنځ کښې سیا سي شعورژوندی کړی دی.

۴۸۳ــ جیمزرا برټ دا فغا نستا ن دجنګ پە باب دخپلومقا لوپەلړ کښې لیکي :چې پر کلنیوا لی سیموبا ندې دروسا نوبریدونەبزګرا ن ا وما لدا را ن چې دمجا هدینوملاتړکوي مجبوروي چې خپل کورکلی پریږدي .شورویا ن پوهیږي چې مجا هدین کلیوتەا ړەلري لەهمدې املەغوا ړي چې ا وبەوچې کړي ا وکبا ن ووژني.
(وا شنګټن پسټ )

۴۸۴ــ دپا کستا ن دبا ندنیوچا روپخوا نی وزیرآ غا شا هی دا فغا نستا ن دموضوع پرفوری حل ا وفصل ټینګا رکړی دی.دەوویل: ددری ملیون ا فغا نی مها جروپەا قتصا دي بوج سرە بیرەدا فغا نستا ن مسئلەچې پەهغەکښې یولوی قدرت لاس لري دپا کستا ن دا منیت لپا رەجدي خطرونەلەځا ن سرەلري. ( پا کستا ن ټا یمز )

۴۸۵ــ دا فغا نستا ن پەمسئلەکښې دملګرو ملتوخا ص ا ستازی دیګوکوردوویزپەوا شنګټن کښې دا مریکا نەلوړرتبەمټا مونوسرەدا فغا نستا ن پرمسئلەخبرې کړی دی.دەدهمدې موضوع پەا ړە دملګروملتولەسرمنشي پیریزدیکوریا رسرە خبرې وکړې.
( جنګ )

۴۸۶ــ دبی.بی.سی.را پیوډرپوټ لەمخې دکا بل رژیم دملیشویوځلورسوەکسیزپیا وړی غونډ پەمرکزي ا فغا نستا ن کښې جوړشوی ا و غزنی تەلیږل شوی دی.کلە چې هغوي تەوسلە مهما ت ا وشپږمیا شتنی پیشکی معا ش ورکړشو دا ملیشەلەخپلومرکزونوڅخەوتښیدل.
( پا کستا ن ټا یمز )

۴۸۷ــ پروفیسرتا مس ګوتیری دشوروي دهغوتا کتیکونوپەباب چې دخپل ځا ن دبقا ا و پا یښت لپا رەیې پەا فغا نستا ن کښې کوي وا یي چې شوروي ځینې سیمې پەا فغا نستا ن کښې بیخي لەمنځەوړي ا وپەځینې ځا یونوکښې دمحلی ا وسیدونکولەعنعنوي ا ختلافونونەبدە ګټەا خلی ا وپەځینې سیموکښې لەمجا هدینوسرە جنګ کوي .دی دروسا نولەخوا دقوا وُدوتلو دوړا ندیزپەباب وا یي لەدې لارې نەشوروي غوا ړي دنړی خلکوتەوښیي چې ګوا کی دا هیوا د دا فغا نستا ن پرینبودلوتەچمتودی.
( نوا ئی وقت )

۴۸۸ــ دمسکورا پیورپوټ ورکړچې شوروي پەزرګونوعسکر ،ټا نکونەا ونورنظا مي مهما ت دپا کستا ن پولوتەنژدې لیږدولي دي.دپرا ود ا دورځپا ڼې یوې تبصرې پا کستا ن ا وا مریکا د کا بل رژیم پرضددنا ا علان شوی جنګ پەرا منځ تەکولوتورن کړی دی.همدا را زدبی.بی.سی. را پیووا یې چې پەسلګونودولتي عسکرتیرە میا شت دمجا هدینولەلیکوسرەیوځا ی شوي دي.
( مسلم )



## ۲۶

۴۸۹ـ په‌پینبورکښې دپاکستا.ن رسمـــــی مقا ما تولـه‌پا ړا چنا رسره‌نژدې دپاکستــــــا ن دا ردولخوا دکابل رژیم‌دیوې ا لوتکـــــــی د را نسکوررولوخبردروغ وگا ڼه .　　( ړا ن)

۴۹۰ـ رپوټونه‌وا یي چې دکابل رژیـــم‌د توپچي قوا وُدډزوپه‌ترڅ کښې دتوپ یوه‌گولـــی دپاکستا ن په‌خا وره‌کښې دری سوه‌متره‌دننـــه با جوړته‌نژدې دخښتی په‌سیمه‌کښې لویدلی چـې کوم تا وا ن یې نه‌دیا ړولی .( نوا ئی وقــت )

۴۹۱ـ زیا توځا رونکوپه‌ا وله‌کښې فکـــر کا وه‌چې دا فغا نستا ن جنگ به‌ډیرژردشـــورو ي په‌گټه‌پا ی ته‌ورسیږي.ا وس شپږکا له‌ کیږي چـې دا جنگ دوا م‌لري.دا سې ښکا رې چې دوا ړه‌ا ړخونه دا فغا نستا ن درا تلونکې نسل دفرهنگـــــــی هویت ا وتعهدا تولپا ره‌دجنگ دنوی ډگــــــرد ا همیت په‌پیژندلوپه‌فکرکښې دي.ددې هـــــدف لپا ره‌روسا ن وا ړه‌ا فغا نی مـا شوما ن دزده‌کړې لپا ره‌شوروي ته‌لیږي.　( وا شنگټن پســـــت )

۴۹۲ـ "ا بوذرغفا ری"په‌هغه‌مضمون کښـــې چې دنوا یی وقت په‌ورځپا ڼه‌کښې خپورشــــوی لیکي :له‌ا فغا نستا ن نه‌دشوروي عسکرودوتلـــو یوکلـن مها ل ویش چې دشا ه‌محمددوست لخوا پـــه غیررسمي ډول وړا ندې شوی دا همیـــــت وړدی. مخکښې شوروي دا نظردرلودچې له‌ا فغا نستـــــا ن نه‌یې دقوا وُوتل دشوروي ا وکا بل رژیم‌خپـــــل منځې موضوع ده‌ا ودا کا ردژنیوله‌خبروسره‌هـــم ا ړه‌نه‌لری.خوا وس دشوروي قوا وُدوتلودمهـــا ل ویش په‌با ب خبرې دشوروي په‌روش‌کښې یولـــوی بدلون ثرگندوي.　( نوا ئی وقـــت )

۴۹۳ـ ا مریکا یی متخصص تا مس‌گوتیـــــری ویلي دي چې شوروي غوا ړي دا فغا نستــــــا ن زیا ته‌برخه‌دخبروپه‌ترڅ کښې له‌خپل هیـــوا د سره‌ونښلوي .ده‌وویل روسا نودوا خا ن دهلیـــــز چې دا فغا نستا ن په‌شما ل کښې دچین،پا کستـــا ن ا وشوروي ترمنځ یوه‌غیرنظا مي سیمــــــه‌ده ، لاپخوا نیولی دی.　( وا شنگټن تا یـــمز )



## ۲۷

۴۹۴ـ دروم‌دولتی مقا ما تودا فغا نستـا ن دپخوا نی پا چا طا هرشا ه‌چې په‌هغه‌هیوا دکښـــې دتبعیدپه‌حا لت کښې ژوندکوي،دسرسا تلــــو لپا ره‌یووسله‌وا ل محا فظ له‌دې ا مله‌تا کلــــی چې له‌تیلفونی تهدیدونوسره‌مخا مخ شوی دی.

۴۹۵ـ په‌ملگروملتوکښې دکابل رژیـــم نما ینده‌فریدظریف ویلي دي :چې دکا بـــــل رژیم‌دمها جرینودمنلولپا ره‌چمتودی.ده‌زیا ته کړه‌هرمها جرچې هیوا دته‌را ستنیږي.په‌دا ســـې حا ل کښې چې وسله‌وا ل نه‌وي ا وخپل ا فغا نـــی هویت ثا بت کړی ا وژمنه‌وکـړی چې درژیم‌پـــر ضدفعا لیت نه‌کوي ،دی ډول ا شخا صوته‌عفــــو کیږي.　( جنگ )

۴۹۶ـ په‌ملگروملتوکښې دکا بل رژیـــــم نما ینده‌فریدظریف ثرگنده‌کړه‌چې له‌ا فغــــاـ نستا ن نه‌دشوروي قوا وُدوتلولپا ره‌مها ل ویش به‌دکا بل رژیم‌ا وپا کستا ن ترمنځ ترمخا مـــخ خبروو‌ړا ندی ،ا فشاء نه‌شي.دی وا یي ترڅوچـــې پا کستا ن دمخا مخ خبرولپا ره‌ا قدا مونه‌کـــړي دکا بل رژیم‌به‌خپل ورووستنی تصمیم‌په‌دې برخه کښې وړا ندې نه‌کړي.　( نوا ئی وقــت )

۴۹۷ـ ا مریکا یی متخصص تا مس‌گوتیـــــری چې تقریباً لس کا له‌یې په‌ا فغا نستا ن کښې تیر کړی عقیده‌لري چې دا فغا نستا ن مسئلـــه‌ددوو را تلونکوکلوپه‌ا وږدوکښې نشي حل کیـدلای ا و ۱۹۸۶ کا ل به‌هم‌پردې موضوع با ندې په‌خبـــرو ا تروکښې تیرشي ا وددی ا شغا ل شوی هیـــوا د مشکلات به‌لازیا ت شي.　( عرب نیـــوز )

۴۹۸ـ په‌دې وختونوکښې شوروي قــــوا وُ هغه‌پا کستا نی محصلین چې دننگرها ردطب پـــه پوهنځی کښې تحصیل کوي په‌گولیوووپشتـــــل چې په‌نتیجه‌کښې ددې محصلینویوتــــــن ووژل شو .دا محصلین دکا بل رژیم‌له‌رویې نه‌نــــا ا میده‌شوي ا وپا کستا ن ته‌درا ستنیدوپـــه‌لاره کښې ووچې له‌دا سې پیښې سره‌مخا مخ شول.

( جنگ )

۴۹۹ـ دکا بل رژیم‌دپولیسویوډگرمــــن له‌خپلې کورنی سره‌په‌دې وختونوکښې له‌کا بــل

نه‌پاکستا ن ته‌را مها جرشوی دی.

( پا کستا ن تا یمز )

۵۰۰ـ دا فغا ن اسلامي پرس درپوټ له مخي دخلق گونددکابل رژیم د۷۹ کسیزی شورا په‌تشکیل کښي له‌غریتوب نه‌صرف نظرشوی دی.

( نوائی وقت )

۵۰۱ـ پاکترتا مس‌گوتیری وا یي چي دا فغانستا ن مقا ومت به‌بریا لی شي،ځکه افغا نا ن کلک مبا رزین اودټینگ عزم‌درلودونکی دي.

( سعودی گزت )

۵۰۲ـ صبا ح الدین کشککی دمسلم په ورځپا ڼه‌کښي دیوي مقا لي په‌ترڅ کښي لیکی: دا مفکوره‌چي ویل کیږي شوروي دکا بل د ما رکسیستي رژیم‌درانسکوریدولو مخنیوی‌یا د اسلامي مقا ومت دځپلولپا ره‌په ۱۹۷۹ کا ل کښي پرا فغا نستا ن تیري وکړ،سمه‌نه‌ده‌بلکه‌دوي له‌دي کبله‌دتیري تصمیم‌ونیوچي درک کړی یي وه‌که‌پرغل ونشي هغوي به‌لرټرلره‌خپلی ۲۵ کلنۍ گټي له ۱۹۵۵ کا ل نه‌را په‌دیخوا په افغا نستا ن کښي له‌لاسه‌ورکړي.

( مسلم )

# ۳۰

۵۰۳ـ په‌پیښورکښي دکا بل رژیم‌قونسل دپا کستا ن ملی دیموکرا تیک گوندا ړبا سی خود خپلي اجرا ئیه‌کمیټي په‌را تلونکی غونډه‌کښي دکابل رژیم‌په‌ملاتړیوپریکړه‌لیک صا درکړي.

( پا کستا ن تا یمز )

۵۰۴ـ دپا کستا ن دنیشنل عوا مي پا رټي مشرخا ن عبدا لولي خا ن وویل چي حکومت با ید دا فغا نستا ن مسئله‌دمفا همي له‌لاري حل کړي اوپه‌دي برخه‌کښي له‌شوروي،هند،ایرا ن او دکابل رژیم‌سره‌مخا مخ خبري وکړي.

( جنگ )

۵۰۵ـ دسره‌صلیب اودتړیوا لوسرومیا شتو کمیټي دپا کستا ن له‌سري میا شتي سره‌په‌یو لړپروگرا مونوکښي دا فغا نی مها جرینودیو شمیرصحي اوما دي اړتیا ودلری کولولپا ره مرسته‌کوي.

( پا کستا ن تا یمز )

۵۰۶ـ دېنتا گون یوه‌پیاوړی متخصص د افغا نستا ن دمسئلي دحل اوفصل په‌لاره‌کښي د"سوله‌غوښتنې "اصطلاح یوفریب او دا فغا ـ

نستا ن له‌مقا ومت نه‌دتړیوا ل ملاتړلرول گڼلي دی وا یي چي روسا ن دمجا هدینودځپلولپا ره تصمیم‌لري.

۵۰۷ـ دشوروي متحدینودآسیا په‌جنوب لویدیځ،هندا وا فغا نستا ن کښي برپا کستا ن با ندي دفشا ررا وړلولپا ره‌یوه‌سلسله‌سیاسي اونظا مي ما نورې پیل کړي دي.ددی ما نورو هدف دا فغا نستا ن له‌مقا ومت نه‌دپا کستا ن ملاتړختمول دی.

( واشنگټن تا یمز )

۵۰۸ـ دا مریکی دمتحده‌ایا لاتودبا ندنیو چا رووزا رت وا یي چي شوروي له‌افغا نستا ن نه دځپلوقوا وُدوتلوپه‌لاره‌کښي جدی علاقه‌نه‌لري اودقوا وُدوتلوپه‌با ب دمها ل ویش په‌با ب وروستنی خبرونه‌دا فغا ن مجا هدینوا وددوی دا مریکا یي حا میا نودبا ورلړولولپا ره‌دي.

( واشنگټن پست )

# سلواغه

# ۱

۵۰۹ـ دری غیرکمونیست کسا ن دکا بل رژیم‌دانقلابي شورا دمرستیالانوپه‌حیث تا کل شوي دي.

( مسلم )

۵۱۰ـ دتهرا ن راډیودرپوټ له‌مخي د کا بل رژیم‌خا ددهرا ت په‌ولایت کښي اتیا تنه مجا هدین اعدا م کړي.مجا هدین دهرا ت با ړپه یوه‌محبس کښي چي دخا دا وکی.جی.بی.لخوا اداره‌کیږي په‌وحشیا نه‌ډول ترشکنجي او ځورولولاندي نیول کیږي.

( جنگ )

۵۱۱ـ په‌حقیقت‌کښي هغه‌څه‌چي روسا ن یې په‌ا فغا نستا ن کښي کوي دیوي هغه‌مذهبوخا نه هڅي په‌بنه‌دي چي دپا کستا ن په‌حسا سه‌سرحدي سیمه‌کښي یي دخپل نفوذدحلقي دپرا خولو لپا ره‌کوي.دروسا نودهرا ړخیزي نظا مي لوړتیا سره‌سره‌روسا ن په‌دي نه‌دی توا نیدلی چي تر اوسه‌مقا ومت غلی کړي.

( پرس انټلجنس ا ن کا ربریست )



۴

۵۱۲ــ دکا بل رژیم مشر ببرک کا رمـــل د قا هری لـه ا لاها لی ورځپا نې سره دیوې مرکې په ترخ کښې ځرگنده کړې ده چې یوشمیرا مپریا ـ لیستي ا ومرتجع هیوا دونه دا فغا نستا ن پـــه گا وندیو هیوا دو یعنې ا یرا ن،پا کستا ن ا وچیـن کښې دا فغا نستا ن دا نقلاب ضد عنا صرو ته نظا مــي روزنه ا وما لي مرسته ورکوي.دا هیوا دونه چـي د کا بل رژیم پرضد په نا ا علان شوی جگړه کښې ښکیل دي ا مریکا ،ا نگلستا ن،لویدیځ ا لما ن،جا پـا ن چین،فرا نسه ،پا کستا ن ،سعودی عربستـــا ن مصر ،خصوصاً دسا دا ت دحکومت په وخت کښـي ا و ا سرا ئیل دي. ( ا لاهالی)

۵۱۳ــ دکرسچن سا ینس ما نیتردوه ورځپا ڼـې خبر پا ل ا دوا ردگیرا دت په خپل نوی کتا ب کښې چې د "ا فغا نستا ن دشوروي دجنگ صحنه "په نــوم چا پ شوی ،لیکي:هغه څه چي روسي لښکرو له ۱۹۷۹ کا ل نه را په دیخوا په ا فغا نستا ن کښې سرتـــه رسولي په ا فغا نستا ن کښې دتر پلان لانــــدې نیول شوی نسل دمحوه کولو په توگه دي.ا وس ا وس پنځه ملیونه ا فغا نا ن په پا کستا ن ،ا یــرا ن ا و دنړۍ په نوروهیوا دونو کښې پنا هنده شوېدي. ( وا شنگتن تا یمـز )

۵

۵۱۴ــ دچین حکومتي مقا ما تو دکا بـــل رژیم دا دعوی چي چین دا فغا نستا ن په کورنیـو چا روکښې لاس وهنه کوي بیخي دروغ گڼلــي ده . دا خبره دهغه لیک په ترخ کښې شوې چي په ملگرو ملتوکښې دچین سفیر ددې تولنې سرمنشي تـــه سپا رلی دی. ( مســلم )

۵۱۵ــ چین لـه دې ځخه چي دکا بل رژیـــم په کورنیو چا روکښې مدا خله کوي ا نکا رکـــړی دي،په ملگرو ملتوکښې دچین سفیردملگرو ملتـو دسرمنشي په نوم په یوه لیک کښې لـه ا فغا نستـا ن نه دشوروي قوا وُدفوری ا وبې لـه قیدا وشرطـــه وتلوغوښتنه وکړه . (. جنگ )

۵۱۶ــ متقا عدجنرا ل ا ی.آ رصدیقي په هغه مضمون کښي چي دډا ن په ورځپا ڼه کښې نشرشـوی لیکي چي دشوروی دتجا وزا ودهغه دپرمختگ تـر منځ یوا زینې ما نع ا فغا نې مجا هدین دي.نــو ځکه مجا هدین نه یوا زې دخپل ملي نجا ت لپا ره جنگیږي بلکه دپا کستا ن دشا ا وخوا هیوا دونــود ا منیت لپا ره هم جنگیږي. ( ډا ن )

٦

۵۱۷ــ لـه میا وا لی نه عا رف بېت دا فغـا ـ نستا ن دمسئلې دحل لپا ره دوه وړا ندیزونـــه غیرلی،یو لـه دې وړا ندیزونو څخه دپروفیســـوز وا رث دی ده ویلي دی چي یوکمربنـــــــددی دپا کستا ن لـه پولو ته ترجلال آ با د ،نورستـــا ن ا وبلـه برخه لـه کندها ر ،دچمن په لورچې یـوا وږد کمربندکیږي دا فغا ن مها جرینو دځا ی پـه ځـا ی کولولپا ره وټا کل شي.څرنگه چي ا کثره مها جرین پښتا نه دي نوکولای شو دهغو سیمو نوم پښتونستا ن کیږدو .عا رف بېت ددې مقا لې تحلیل کوونکـــي وا یي سره لـه دې چي دی لـه دې وړا ندیزســـره موا فق نه دی خو بیا هم دا نظریه غیرمنطقـــي ا و غیرقا بل عمل بولي خـــوردوی یـــي نـــه .بـــل وړا ندیزدگلبدین حکمتیا رذدی چي ویلي یــــي دی چي دسولې یوه قوه دې دپا کستا ن ا وا فغـا ـ نستا ن ا وا فغا نستا ن ا وشوروي په پولو وا چوله شي.ددې مضمون تحلیل کوونکي وا یي چـــي دا وړا ندیزپه ظا هره کښې ډیرسا ده ښکا ري خولـــه عملـــي ا ړخه ډیرپېچیلـي دی ا ودمننې وړنـــه دی. ( جنگ )

۵۱۸ــ دکا بل رژیم دبا ندنیو چا رووزیـــر دا ربوټ دروغ بللي چي گوا کي دژنیو دخبـــرو په وروستي پړا وکښې دده لـه خوا لـه ا فغا نســـتا ن نه دشوروي قوا وُدوتلو په با ب یو یوکلن مهــا ل ویش وړا ندې شوی دی. ( نوا ئي وقـــت )

۷

۵۱۹ــ دکا نـا ډا دنا ربا نودلوډتیــــرا ژ درلودونکي ورځپا ڼې لیکلي دی:هغه څه چـــي پرا فغا نستا ن با ندې دروسیې لـه تیری نه پــه لاس را غلي یو ملـیون مړه ،دخورا کي مـــوا دو کمښت،دروغتیا یي خدما تو نشتوا لی ا ودمقا ومت درښتینو پیروا نو عملـي تبـا رزدي .ا وس ددې

قضیې بوه حل تهدرسیدولپا رهددی اړهلیدله کیږي چې پرمسکوبا ندې نظا مې ا ودیپلو ما تیکی فشا رونهزیا ت شي. (پا کستا ن ټا یمز )

۵۲۰– دپا کستا ن دصوبهسرحدا منیه قوما ندا ن وا یي چې پههغهصوبهکښې دبمونوپه چا ودنهکښې خا دلاس لري.دهوویل پا کستا ن ته درا ننوتلوپهوخت کښې ددا سی ترووریستا نود نیولولپا رهجدی ا قدا ما ت کیږي.
( جنگ ا ونوا ئی وقت )

## ۸

۵۲۱– دکا بل رژیمهلیکوپترونودپا ړا چنا رپرسیمهمرمۍ ا ورا کتونهوا ورول دا پهیوه ورځ کښې دپا کستا ن پرهوا یي حریمبا ندې دوهمتیری دی.

۵۲۲– پهمیرا نشا هکښې دیوهبمدچا ودنې لهامله ۳۵ تنهټپیا ن شول.دآدمخا ن پهبا زا ر کښې همدمغا زوا ودوکا نونوهیندا رې ما تې شوې دی.

۵۲۳– دکا بل رژیمشربېرک کا رمل لویدیځوژورنا لیستا نوتهوویل:چې با ید ا مریکا پرپا کستا ن فشا ررا وړي چې دکا بل له رژیمسرهدسولې ترون لاسلیک کړي.ځکهتردې پرتهدمسئلې هیڅ ډول حل نشته.خودهزیا ته کړهچې ا مریکهبههیځکلهدا سی ونهکړي.ده دعوی وکړهچې ا مریکهنهغواړي چې روسي قوا وی لهافغا نستا ن څخهووزي. ( جنگ )

## ۹

۵۲۴– دکا بل رژیمدووهلیکوپترونود سلوا غی پها ووهنیتهدپا کستا ن پرفضا یي قلمروتیري وکړپهپا ړا چنا ریې توغند ي وتوغول چې پهنتیجهکښې یوتن مړا ودری تنه نورټپیا ن شول. ( مسلم )

۵۲۵– نیگ ژینیا ن پهپا کستا ن ټا یمز کښې دیوې مقا لې پهترځ کښې لیکي:چې پر ا فغا نستا ن با ندې دشوروي تیري نهیوا زې دسیمې سولها وثبا ت گوډکړي بلکهدچین ا منیت تهیې سملوی خطرپیښ کړي دی لهبلې خوا دا فغا نستا ن دمقا ومت ځوا کونولهسورو ن لخوا کونوسرهپهخپلهمبا رزهکښې زبا تهپیا وړ تیا ترلاسهکړي ده. ( پا کستا ن ټا یمز )

۵۲۶– د "ا مریکا غږ" رپوټ ورکړی چې په تیروشپږوکلونوکښې پرا فغا نستا ن با ندې د شوروي دیرغل پهترځ کښې ترسل زروتنوزیا ت ا فغا نی ما شوما ن مړهیا ټپیا ن شوي دي.
( جنگ )

۵۲۷– دبی.بی.سی.را ډیوووېل:دکا رمل رژیمیوتن پها عدا ما ودوهتنهنوربهشل کا له بندمحکوم کړي چې ټول دا فغان محا هدینولهیوې ډلې سرها ړهلري.رپوټ وا یي چې دوی تهپه لوگرکښې پهورا نوونکوعملیا توکی دگډون پهتوردا سزا ورکړه شوې ده. ( پا کستان ټا یمز)

۵۲۸– دپا کستا ن پهبا ندنیوچا روکښې ددولت وزیرزین نورا نی ویلي دي چې دکا بل رژیمدپا کستا ن پرضدپولړدا سی تبلیغا ت پیل کړي چې عا مهذهنیتونهمغشوش کړي.دهوویل دا کا رددې لپا رهکیږي چې عا مه ا ذها ن لههغو ظلمونوا وپهنړیوا لهسویهمحکوم شوو سیا ستونو څخهچې دکا بل رژیمیې پها فغا نستا ن کښې کوي بل لورتهوا ړوي. ( ډا ن )

۵۲۹– دپا کستا ن ټا یمزورځبا ڼهدیوې سرمقا لې پهترځ کښې لیکي:ببرک کا رمل دعوی کوي چې هغهروسا نونهبلکهدا فغا نستا ن خلکو وا ک تهرسولی دی ورځپا ڼهلیکي:چې کهدا فغا نستا ن خلکودی قدرت تهرسولی وي نوبیا ولي تردری ملیونوزیا ت ا فغا نا ن لهخپل هیوا د څخهشړل شوي ا ویا لهخپلوسیمونهرا تښتیدلي دي .کهدا فغا نستا ن خلکودی دوا ک ځوکۍ ته رسولي وي نودهولې دخپل رژیمپرعسکروسربیره ۱۲۰ زرهخا رجی عسکرهمدخپل ځا ن دبقا دپا ره هیوا دتهرا وستلي دي. ( پا کستا ن ټا یمز )

## ۱۱

۵۳۰– رپوټونهوا یي چې دکورمې ا یجنسۍ پربیلا بیلوبرخوبا ندې دکا بل رژیمدا لوتکو لخوا پهدریووروستیوورځوکښې بمبا رۍ روا نې دي.یوبل خبروا یي چې پهکورمې ا یجنسۍ کښې دپا کستا ن سرحدی قوا وژدخا د دنوکرا نویو خطرنا ک پلان شنډکړی دی.هغوي ترلس سا عته

وسلهوالي ننبتي وروستهدکا بل رژیم له
اجیرا نونهلس خطرناک راکتونهترلاسهکړل .
ورانکا رودا راکتونهپرځای پرېښودل او
غرونوتهوتښتېدل. ( جنگ )

۵۳۱– شوروي وايي چې پهپاکستا ن کښې
بهدکابل رژیملخوا دافغانی مهاجرینو د
کمپونوکتل دافغانستا ن دسولهایزحل لومړی
شرط وي .دبی.بی.سی.را پېودرپوټ لهمخې
شوروي لهپاکستا ن څخهغوښتي دي چې هغهسل
روزنیز کمپونهچې دافغانستا ن پولوتهنږدې
دچینا یې اوامریکا یې مشاورینولهخوا اداره
کیږي،لهمنځهیوسي. ( هوا ن )

۵۳۲– دپاکستا ن داسلامي جماعت شوری
اخطا رورکړی چې کهپرافغانستا ن باندې د
مجاهدینولهخوښې پرتهکوم حل وتپل شي دا
پریکړهبهداسلامي نړۍ لپاره دمنلووړنهوي او
دیولړستونځوسبب بهشي. ( جنگ )

## ۱۲

۵۳۳– دختیځ ایرا ن پهتولولویوښاروڼو
کښې روغتونونهنهیوازې لهافغانی مهاجرینو
ډک دي بلکههغهایرانیان هم چې کښې لید
کیږي چې لهمهاجرینوسرهدتماس لهامله په
ساری ناروغیوا ختهشوي دي.ایرانی مقاماتو
اوس دافغانی مهاجرینولپاره دځانګړیو
روغتونوپهجوړولولاس پورې کړي.
( ریفوجی ایرا ن)

۵۳۴– دکابل رژیمتوپ لرونکوالوتکو
نن دری ځل دپاکستا ن پرهوایي قلمروتیری
کړی اودپاړاچنا رپهغیرنظامي سیمویې
توغوندې ورورويشتل چې پهنتیجهکښې دری
ښځې ټپي شوې.نوموړوالوتکوپهلیک ما نخیلو
کښې هوایي دګرهم بمبا ري کړ. (نوائی وقت )

۵۳۵– دپاکستا ن دنیشنل دیموکراتیکې
پارټی سکرترجنرال ارباب همایون خان د
هغوچاودنولهامله چې دپاکستانپه مختلفو
برخوکښې شوي خواشیني ښودلې ده.دهوویل
چې ددی حالاتودمقابلې لپاره بایددکا رمل
لهرژیمسره مستقیمې خبرې اترې وشي.
(جنگ )

## ۱۳

۳۵۶– ابوذرغفاری (پهپاکستا ن باندې
دشوروی دبریدخطر )ترسرلیک لاندې پهیوه مقاله
کښې لیکی څودلیلونهشتهچې شوروی قواوی
نشی کولای پهمجاهدینوپسې دپاکستا ن خاوری
تهراننوزي.پاکستا نپهحقیقت کښې دروس له
خوادورانکاری لهخطرسره مخامخ دی.ددی خطر
پهمقابل کښې بایدهرډول تیاری ونیول شي.
(نوایی وقت )

۵۳۷– پهپاکستا ن کښې ددموکراسۍ داحیا
دغورځنګ مرکزي اجرائیوي کمیټی دپاکستا ن
پهسیاسي چاروا وپهځانګړی ډول ددې هیوادپه
تعلیمي موءسسوکښې دافغانی مهاجرینو
دمخ پرزیاتیدونکې لاس وهنی لهامله خواشیني
څرګندهکړې ده .دې کمیټی دپاکستا ن لهدولت
څخهوغوښتل چې دپاکستا ن پهکورنیوچاروکښې
دافغانی مهاجرینودلاس وهنی مخهونیسي او–
دولت بایدداډول اقداماتوپهمقابل کښې چې
پهپاکستا ن کښې بهدافغانی مهاجرینوددوام–
داره پاتې کیدوسبب شي،هوښیاروا وسي. (مسلم )

## ۱۴

۵۳۸– دامریکا چاپ دوال ستریت ژورنال
ورځپانې دیوررپوټ پهترڅ کښې عقیدهڅرګنده
کړی چې دپېښورپهګډون دپاکستا ن دشمال
لویدیزسرحدپه مختلفوسیموکښې چاودنې اوپه
قبایلي برخوکښې ناآرامی چې دکابل درژیم
پهلمسونوسرتهرسیږی هدف یې دپاکستا ن
دحکومت دارادې کمزورتیا دهترڅوپاکستا ن دې
تهاړکړی چې دکابل لهرژیمسره مستقیموخبرو
اتروتهغاړهکیږدي. (نوایی وقت )

۵۳۹– دپاکستا ن پهباندنیوچاروکښې
ددولت وزیرزین نورانی ویلي چې پاکستان به
اوس دافغانستا ن پهدننهکښې دمبارزې پهخاطر
دوسلودلیږلودپاره ددې هیواددخاورې
استعمالولواجازهورکړي. (جنک )

۵۴۰– دپیپلزدګوندا یالتي رئیس د
پاکستا ن لهحکومت څخهدکابل لهرژیمسره د
مستقیموخبرواتروغوښتنهکړې ده.
(پاکستا ن ټایمز )

۵۴۱ـ لەلاهورڅخەشجا عت حسیــــــن دډان
ورځپا نې تەدیولیک پەترڅ کښې لیکي کـــەد
پا کستا ن اوا فغا نستا ن ترمنځپه غیر مستقیمو
خبروا تروکښې کومەموا فقتنا مەچی لەا فغا ـ
نستا ن څخەدشوروي پوځونودوتلویوزما نـــــي
جدول یا یوفورمول اودملګروملتولەخوا ځانګړي
تضمیمونەلەځا نەسرەولري نوسرەلەدې چې تـر
هغەوروستەموږمجبوروا وسوچې دکا بل لەرژیـم
سرەخبرې اترې وکړوبا یدلەدې وخت څخەا عظمي
ګټەوا خلو.                    ( دا ن)

۵۴۲ـ خا لدحسین دمقا لې پەترڅکښې لیکي
دکا بل لەرژیمسرەبا یدهیڅ وخت مستقیمې خبرې
ونکروحکەچی داکا ریوحل وشی نوهغەحکومت تـه
بەقا نونی بنەورکړل شي.              ( مسلم )

۵۴۳ـ دپیپلزپا رټی یومشرآفتا ب احمـد
شیرپا وویلي دي چی دپا کستا ن پەسیا سي چا رو
کښې افغا نی مها جرین دمداخلی هیڅ حق نـــه
لري.هەوویل چې پەپا کستا ن کښې دخلکــــــو
دوا قعي استا زودیوحکومت جوړیدل حتمي خبره
ده،ترڅودا فغا نستا ن مسأ لەحل شي.
(نوا یی وقت )

## ۱۵

۵۴۴ـ شوروي اتحا دا ودکا بلرژیمدا فغا ـ
نستا ن دمسا لی دحل لپا رەپەپا کستا ن کښـې د
افغا نی مها جرینودکمپونوکتنەلومړنی شـرط
غورەکړی دی،دجنګ ورځپا نی دخپلې سرمقا لې
پەترڅ کښې دا شرط پەدقیقەتوګەڅیړلـــــی او
نتیجەا خلی چې دا شرط ددې کشا لې دحل لپا ره
پرتەلەبها نې څخەبل شی نەدی.

## ۱۶

۵۴۵ـ دبا وري منا بعودرپوټ پرا ســـا س
دپیښورپولیسودتروروستا نویوفهرست لاس تـــــه
را وړی چې هغوی پەپیښورکښې دمهمودولتـــــي
ودا نیودا لوزولولپا رەموء ظف شوي و. ،دپـا ـ
کستا ن دشما ل لویدیزسرحدا یا لتی حکـــومت
لدې حا لت سرەدمقا بلی لەپا رەا منیتــــــــــی
ترتیبا ت سخت کړي دي.

۵۴۶ـ دکا بل رژیمدوەتنەتربیەشويعسکر
پدې ورستیووختوکښې لەخپلې دندی څخـــــه
تښتیدلي اوچمن تەرا رسیدلي دي.

## ۱۷

۵۴۷ـ انجینیرزیدی دیومضمون پەتـرڅ
کښې لیکی چې شوروي اتحا دسربیرەپرپوځـــی
اړخ پدی ورستیووختوکښی خپل پا میوبل اړخ
تەهمرا ګرځولی دی یعنی دې هیوا ددا وړدې ـ
مودې لپا رەیوپلان طرح کړی دی چې ترهغــــه
پلان لاندې افغا نې ما شوما ن دکمونستي ایدـ
یا لوژی دزدەکړې لپا رەشوروي اتحا دتەلیږي.
(جنـګ )

## ۱۸

۵۴۸ـ دپا کستا ن دکورنیوچا رووزیروا یي
چې پا کستا ن تەدا فغا نې مها جرینودملا تړپـه
خا طرد هیـوا دپه مختلفوبرخوکښې دبمونـــــود
چا ودنوا ولەا سرا روڅخەدکومرګـونوسزا ورکـول
کیږي.                    (نوا یی وقت )

۵۴۹ـ دا مریکا دمتحده ا یا لاتودبا ندنیو
چا رومرستیا ل ریچرددمرکې پەترڅ کښې ویلــي
دي چې پە افغا نستا ن با ندې دشورویا نـــــود
یرغل لەوختەترا وسەپورې دا فغا نې مها جرینو
شمیرپنځەملیونوتەرسیږي.دەدکا رمل رژیــــم
دمخا لفینودبندي کولوا ودهغوی دځورولــــــو
لەا ملەمحکوم کړی دی.               (جنـګ )

۵۵۰ـ دنیشنل دیموکرا تیکې پا رټـــــی
عمومی منشي عبدا لخا لق وویل کەچیــــری د
پا کستا ن حکومت ددی هیوا دپه سیا سي چـا رو
کښې دا فغا نې مها جرینولاس وهنی پەبا ب خپل
سیا ست بدل نکړې،ددەګوندبەځا ن پەحقەوبولي
چې دکا رمل رژیمپوځونەدې هیوا دتەرا وغوا ړي.
(مسلـم)

۵۵۱ـ افغا نی مجا هدینوپدې ورستیـــو
وختوکښې پەکندها رکښې دشوروي اودکا بـــــل
درژیم دقوا وپرضددیوبریا لي عملیا ت پەتـرڅ
کښې دشوروي څلورهلیکوپترونەرا غورځولي دي.
(مسلـم)



## ۱۹

۵۵۲ـ دامریکا دنبراسکا په پوهنتون کښې دنړیوال مطالعاتو او پروګرام مونورشیس وایي چې افغاني مجاهدین دشوروي یرغل پرضد په مبارزوکښې دتیروشپږوکلونو په ترتله په ښه شان وسله وال شوي او منظم شوي دي. (پاکستان ټایمز)

## ۲۰

۵۵۳ـ دکرمي ایجنسی په بازار سده کښې نن دبوبم په چاودنه کښې یوکس ووژل شو او (۱۷) نورټپیان شول. (پاکستان ټایمز)

۵۵۴ـ دشوروي اتحاد مشرګورباچوف ویلي دي چې هیوادبه یې ډیرژر له افغانستان څخه خپل پوځونه وباسي خوزیاته یې کړه چې پدې برخه کښې بهرنی قوتونه چې په راءس کښې یې امریکا ده ستونزې پیداکوي .

۵۵۵ـ دهنددباندنیوچارووزیرآر.جي.بکت دجارج ټاون واشنګټن په پوهنتون کښې هیله څرګنده کړې ده چې شوروي قواوې به ډیرژر له افغانستان څخه ووځي. ده ویل چې ده په دې برخه کښې ډیرې مثبتې نښې نښانې لاس ته راوړې دي خودزیاتوجزئیاتوله افشاکولوڅخه یې ډډه وکړه .

## ۲۱

۵۵۶ـ دعسکري خدمت ته دافغانستان د تولواتباعودجلب لپاره دنوي قانون چلول په کابل کښې دشوروي دلاس پوځي رژیم دماتې یوه بله نښه ده .

۵۵۷ـ دپاکستان دسرحددشمال لویدیز ایالت ګورنرعبدالغفورهوتی دکارمل رژیم ته خبرداری ورکړی دی چې پاکستان به خپلو پولوباندې نورتیری زغملای نشي. (مسلم)

## ۲۲

۵۵۸ـ پروفیسراشفاق علي خان دیو مضمون په ترڅ کښې وایي چې دافغانستان دمسئلې دحل له شرایطوڅخه یوداده چې پاکستان باید په دې وخت کښې دپاینت او امنیت په هکله دشوروي له استراتیژي څخه خبروا وسي او پوه شي چې دافغانستان په نوګرکښې څنګه معامله کیږي . ددې مقصداودموثقواطلاعاتودلاس ته راوړلولپاره باید محققین، پوهان او دیپلوماټان سره یوځای کارو کړي. له شوروي اتحادڅخه لاس ته راغلي خبرونه کفایت نه کوي. (نوا یی وقت)

۵۵۹ـ دملګروملتودسرمنشي ځانګړي استازی دژنیودسولې دخبرواتروددختمولوډلرې کولولپاره دراتلونکي میاشتي په اولوکښتو کښې له کابل او اسلام آباد څخه کتنه کوي. (مسلم)

۵۶۰ـ پاکستان په ملګروملتوکښې دکابل درژیم دسفیردهغوتورونوهلوځلوپه باب چې د مختلفوهیوادونودهیئتونوافکارچې له خیبر ایجنسی څخه یې کتنه کوله ګمراه کړي سخت عکس العمل ښودلی او هغه یې غندلی دی . دکابل درژیم استازي کوښښ وکړچې دخیبر ایجنسی دحالاتوپه هکله نړیوال افکار ګمراه کړي چې داکاردپاکستان په کورنیوچاروکښې له لاس وهنوسره مساوي بلل شویدي. (پاکستان ټایمزاونوایی وقت)

۵۶۱ـ دایران دمجلس رئیس هاشمي رفسنجاني هیله څرګنده کړې ده چې دافغانستان خلک به ډیرژرخپلې آزادۍ ته ورسیږي. ده دا خبرې دشوروي دباندنیوچاروزارت له مرستیال جارجي کرونین کوسره له کتنې وروسته وکړې. ده زیاته کړه چې په اوسني وخت کښې نشي کولای په افغانستان کښې دشوروي اتحاد دمداخلې نښې افشاء کړي. (مسلم)

۵۶۲ـ دافغانستان داسلامي جمعیت د تنظیم مشراستاذبرهان الدین رباني دپاکستان دپارلمان دغړو په یوه غونډه کښې په اسلام آباد کښې وویل چې مجاهدین او شوروي اتحاد دافغانستان دقضیې دحل یوازنۍ اصلي دوه اړخونه دي. (پاکستان ټایمز)

۵۶۳ـ دامریکا جمهوررئیس رونالډریګن په دې ورستیووختوکښې دکابل درژیم تجارتي امتیازمعطل کړیدی او په همدې ډول له افغانستان څخه دواردا توممحصول یې لوړ کړی

دی . (پرس انټلجنس اینډکا رپېـــټ )

## ۲۳

۵۶۴ـ داوها یوچاپ ددی تندورځپانېـــې دمسئول مدیرپه نوم بری ها تمن دیولیک پـــه ترڅ کښې لیکلي که چیرې شوروي اتحادد افغانستان دمقاومت په ماتولووتوانیږي اوپـــه افغانستان کښې خپلې پښې ټینګې کړي پـــه هغه صورت کښې هیڅ ډول هلې ځلې دهنددبحر اودفارس دخلیج په لورچې دآزادی نړی پـــه سلوکښې اویانفت ځینی تیریږي ددوي دپـــر مختګ مخنیول نشي کولای. (دی تان اوها یو)

۵۶۵ـ دخادګومارل شووکسانوی ګتـــې هلې ځلې چې غوښتل یې چې دسرحددروغتیـــا دپخوانی وزیرظفرعلی شاه په ملکیت پـــورې دکریمی انډستری ګودامونه والوزوي شنـــډي شوې .درپوټ پراساس دوه تنه دخاد ګومـــار ل شوي کسان چې دګودامونوله احاطې څخه تیریدل دهغه ځای دچوکیدارله خوا ولیدل شول.دوي پـــه داسې حال کښې چې ډزې یې کولې وتښتیدل.
(جنـــګ )

## ۲۴

۵۶۶ـ دپاکستان دتحریک استقلال دګوند مشرمتقاعدمارشال اصغرخان دافغانستـــان دمسألې دحل لپاره دکابل له رژیم ســـره دمستقیموخبرواترودکیدوپه هکله ټینګار کـــړي دي . ددې تورپه وړاندې چې دسی آی ای دـ سازمان نماینده دی انکارو کړ. (مسلـــم )

## ۲۵

۵۶۷ـ دکورمې ایجنسۍ په پاړه چنار کښــې دیوبم په چاودنه کښې یودولتي مامورټپي شـوی اودده ودانی ورانې شویدي. (ډان )

۵۶۸ـ په پاکستان کښې دشوروي سفیـــر عبدالرحمن وزیروف ویلي دي چې دافغانستان دمسألې دسیاسي حل لپاره دافغانستان پـــه کورنیوچاروکښې دبهرنی لاس وهنې بندیدل بوه ضروري اولازمي خبره ده .ده هیله څرګنده کړه چې ۱۹۸۶ کال به دافغانستان دمسئلې دسیاســي حل کال وي. (نوایی وقـــت )

۵۶۹ـ شوروي اتحاد اود کابل رژیم تـــر ۱۹۹۰ کال پورې دسوداګرۍ یوتړون لاسلیـــک کړی دی .تردې تړون لاندې به دد واړو هیوادونو ترمنځ دسوداګرۍ اړیکې دپام وړزیاتوالـــی ومومــې. (ډان)

## ۲۶

۵۷۰ـ داخبرچې دکابل رژیم له افغـــا ـ نستان څخه دشوروي قواؤدوتلوله پاره په رسمـــي توګه یوپلان وړاندې کړی دامریکا اوپاکستان له خوارد شوخوبیا هم ددې ډرامې دوروستیـــو بودنولپاره زمینه برابره شویده .خوسره لدې هولو تردیدونوپه رښتیا سره اوبه په دیګ کښې ایشــي اویوشی مخ په پخیدودي،اوسپنه سره شوې ده او دټکولوانتظارباسي دحل کنجي په مسکوکښې ده خوپاکستان هم بایدزړورابتکارات ولـري .

۵۷۱ـ امریکا غردامریکا دباندنیوچارو په وزارت کښې دپاکستان اوبنګله دیش دچارو مدیرهربرت له خولې وایي چې دافغانستـــا ن دمسألې په هکله دامریکا سیاست دتیروشپـــږو کلونوپه دوران کښې داوه چې دافغانستـــا ن دمسئلې سیاسي حل دی دخبرواترولەلارې وشي.
( پاکستان ټایمز )

## ۲۷

۵۷۲ـ دامریکا دباندنیوچارودوزارت یو ویاندوویل چې له افغانستان څخه دشوروي ـ قواؤدوتلولپاره دې هیوادترا وسه پورې کـــوم زماني جدول لاس ته ندی راوړی اونه یې پـــه دې هکله شوروي اتحاد سره پټ تماس نیولی دی.
(جنـــګ )

۵۷۳ـ په اوتاوا کښې دشوروي دسفـــارت دویاندوینا دکانادا په اتنا ریوکښې دافغانانو دټولنې رئیس طاهری دروغ وبلله .دشـــوروي دسفارت دې مقام ګوښښ کړی و چې په افغـــا ـ نستان کښې دجګړې مسئولیت په باندنـــي لاس وهنې پورې مربوط کړي. ( پاکستان ټایمز )

۵۷۴ـ دپاکستان دبلوچستان نشنـــل پارتۍ دافغانستان دقضیې دسوله ایزحل پـــه

خا طردا فغا نستا ن ا وپا کستا ن ترمنځ دمستقیمو خبروا تروغونښتنه وکړه . ( پا ن )

۵۷۵ــ ملک عبدا لولی خا ن کوکي خیـــل ویلي دي چې دقبا یلودخلکوپه مقا بل کښـې د عملیا توپه ترخ کښې دکا بل رژیم یوعسکرهـــم خیبرا یجنسۍ ته نه دی را غلی ده وویل: چـــې ا فغا نی مها جرین دا مریکا نوکرا ن دي ا وهغه ټول تکلیفونه چې په ا فغا نستا ن کښې دننـــه کیږي ټول دا مریکا له ګټوسره تړلي دي.ده وویل چې که دپا کستا ن حکومت دقبا یلوپه خلکوبـا ور لري ا ودا مریکې له پنجې نه ووزي موږکا رمـــل ا سلام آبا دته را وستلای شو. ( نوا ئی وقـــت )

## ۲۹

۵۷۶ــ با وري منا بع وا یي چې یوشمیـــر تروریستا ن چې دورا نکا رۍ لپا ره پا کستا ن ته را غلی وودجعلی تذکرودرلودونکي وو . ( جنګ )

۵۷۷ــ ا مریکا غږدا فغا نستا ن په ختیـــځ کښې دمجا هدینوا وروسي قوا وُترمنځ دسختـــو جګړوړپوټ ورکړی دی.را پیودتلفا توا وخسا رو دقیقه ا حصا ئیه ورنه کړه .

۵۷۸ــ دا فغا نستا ن دپا رلما ن یـــوه پخوا نی غړی فتح ا لملک دیوې مقا لې په تـــرخ کښې لیکي:چې شوروي پرا فغا نستا ن با ندې پر خپل تیري سخت پښیما نه دی.هغه هیوا دله خپلـې ا شتبا ه نه یرا ندیښمن دی.په زرونوټا نکونـه دمجا هدینوله خوا سوځول شوی،په سوونوا لوتکـې ا وهلیکوپترا نسکورشوي ا ودروسي عسکرومـړی هره ورځ روسیې ته وړل کیږي.دی زیا توی چـــې په دې صورت کښې شوروي څنګه کولای شي چـــې دا زیا نونه له خپلوخلکونه پټ کړي.

## ۳۰

۵۷۹ــ یوه فرا نسوی پوه "ا ولی وررا ی" ویلی دی،شوروي غوا ړی چې ا فغا نستـــا ن د مغولستا ن غوندې خپل یوولایت کړي سره له دې چې ا فغا نستا ن دشوروي په مقا بل کښې دیـــوه حا بل بنه درلوده .ده وویل که ا سلامي نړۍ پـــر شوروي فشا ررا وړي ا وله مجا هدینوسره مرستـــه زیا ته کړي مثبتې ا غیزې به یې روښا نه وي.

( نوا ئی وقـت )

۵۸۰ــ دا فغا نستا ن دا سلامي حرکت مشـــر آیت ا لله محمدآ صف محسنی چې دګوندمقربیـــې په ا یرا ن کښې دي دا فغا نستا ن دمسئلې دحـــل لپا ره دیوه دا سې کنفرا نس دتشکیل غوښتنه کړې چې په هغې کښې پا کستا ن ، ا یرا ن،مجا هدیـــن شوروي ا ودکا رمل رژیم برخه ولري. ( مسلم )

۵۸۱ــ بی.بی.سی.را پیورپوټ ورکړچــــې جنګ په ا فغا نستا ن کښې توندشوی ا ودپا کستا ن پولوته را لنډشوی دی.دې را پیوهمدا سې وویـــل چې دکا بل رژیم دتوپ یوشمیرګولۍ دپا کستـا ن په خا وره کښې لګیدلې دي.

( مسلما ونوا ئی وقـــت )

# کب

## ۱

۵۸۲ــ دکا بل رژیم مشرببرک کا رمـــل دا رپوټونه ردکړي چې ویل شوي وودده درژیـــم نما ینده دخبروپه ترخ کښې کوردوویزته لـــه ا فغا نستا ن نه دروسي قوا وُدوتلوملها ل ویـــش سپا رلی دی.ده زیا ته کړه چې دروسي قوا وُوتـــل به له ا فغا نستا ن نه تریوکا ل زیا ت وخت ونـــه نیسي خودا کا ردا مریکا دلاسوهنې له بندیدلـــو سره تړلی دی. ( جنګ )

## ۲

۵۸۳ــ پا کستا نی مقا ما تو یـــوشمیـــر ما ینونه ،دوه ها وا نونه ا ویورا کټ په پا ړا چنا ر کښې لاس ته را وړل .دا وسلې دخا دله خـــوا دې سیمې ته دورا نکا رۍ لپا ره را ا ستولې شوې وې.
( نوا ئی وقـــت )

۵۸۴ــ غلوروا فغا نی تبعه وچې له ۲۰ تنو ا فغا نی محصلینوسره په وا رسا کښې دکا بل رژیم سفا رت ا شغا ل کړي وه ا وغوښتل یې چې دیـــوه آ را م ژوندلپا ره په پولینډکښې پا تې شي دیـوې شپې ترتیریدووروسته هغوي ددې هیـــوا د د پولیسولخوا له سفا رت نه وا یستل شول ا وخوشـې شول. ( مسلم )

۵۸۵ــ دکا نا ډا چا پ د "ګلوب وا یندمیـل" ورځپا ڼې دیوې سرمقا لې په ترخ کښې لیکی چې

بدلون نه دی راوستلی... په افغانستان باندې د شوروي د تسلط ټینګیدل به په پاکستان، شمالي هند او د عرب په بحیره کښې د هغه هیواد د قدرت د پراخیدو سبب شي، او ددې ډول پرمختګ د مخنیوي یوازنی عامل د افغاني مجاهدینو دوامداره مبارزه ده... پر مجاهدینو باندې په چټک بری کښې د شورویانو پاتې والی به ددې سبب شي چې جګړه په تدریجي توګه د پاکستان د پولو خواته راوغځیږي چې بیا به د پاکستان پر ضد د عملي فشار او پوځي اقدام سبب شي... د افغانستان د غلي کولو لپاره شورویان پخپلو کوښښونو کښې پاتې راغلي دي او د مجاهدینو د پیاوړتیا پرلپسې زیاتیدو هغوي په تنګ کړي دي او که د شورویانو د هیلو پرخلاف پاکستان پخپل دریځ ټینګ ودریږي، نو په دې صورت کښې د یو داسې سیاسي حل امکانات شته چې د روسانو د قواوو د وتلو سبب وګرځي. ( د امریکا غږ– دری )

۴۸– د کابل او شوروي ګډو قواوو چې ۹۰۰ ټانکونه، زغروزوسایط، توپ لرونکي هلیکوپټر–ونه او مګ الوتکې ورسره دي په جاغوري کښې پر مجاهدینو بریدوکړ، پدې جګړه کښې ۱۵ مجاهدین یا شهیدان شوي او یا ټپیان شوي دي.

( د تهران راډیو )

۴۹– مجاهدینو په جلال آباد کښې د شوروي او د کابل د رژیم د قواوو لوی برید شنډ کړ، پدې برید کښې د رژیم اته عسکر ووژل شول او یو ټانک او دوې پوځي لارۍ له منځه ولاړې، همدا راز مجاهدینو د پکتیکا په کټواز کښې په یوه نښته کښې د شوروي قواوو یو ټانک وچاوداوه په کښې سواره ټول کسان ووژل شول. سربیره پردې د دښمن یوه تدارکاتي لارۍ هم د مجاهدینو لاس ته ورغله.

( د کراچۍ راډیو– پاکستان)

## ۱۳

۵۰– هغه رپوټ چې د پروفیسور ارماکورا له خوا ملګرو ملتونو ته وړاندې کولو په خاطر په افغانستان کښې د بشر له حقوقو څخه د سرغړونو په هکله برابر شوی دی، د کابل حکومت په مستقیم ډول او د شوروي حکومت په غیر مستقیم ډول د بشر له حقوقو څخه په پرلپسې لویو سرغړونو تورنوي دی وایي چې: په افغانستان کښې د دې سر–غړونو روښانه نښې د زهرجنو ګازونو له استعمالولو بزمنټه کولو، غچ اخیستونکو عملونو، د ماشومانو د لوبو د سامان په شان د بمونو له استعمالولو او له بندیانو سره د وحشیانه سلوک له کولو څخه عبارت دی هر ساعت چې د افغانستان د سیاسي حل د لارې د پیدا کیدو لپاره ضایع کیږي د هغه هیواد د ټولې ټولنې لپاره زیان رسوي. د کابل د رژیم استازی پروفیسر ارماکورا په افغانستان کښې د حکومت د شکل پر ضد سیاسي هدف په درلودو سره تورن کړ... دا لومړی ځل نه دی چې د ملګرو ملتو عمومي ټولنه په افغانستان کښې د بشر له حقوقو څخه سرغړونې ترڅیړنې لاندې نیسي بلکه د شوروي د یرغل څخه راپدیخوا یې پرلپسې ترڅیړنې لاندې نیولي دي. ( د امریکا غږ– دری )

۵۱– افغاني مجاهدینو د لیندۍ په څلورم د سالنګ په لویه لارکښې د شوروي د سون د موادو پر یو کاروان د برید په ترځ کښې د سون د موادو ۱۶ ټانکرونه له منځه یوړل، کله چې یو ملکي مسافر وړونکی سرویس د مجاهدینو او شورویانو د ګولیو د اور ترمنځ ګیر شو د سرویس ۱۵ سورلۍ ووژل شوې. همدا راز مجاهدینو د سالنګ په لویه لارکښې پر یو اکمالاتي کاروان بریدوکړ او د کاروان ۲۰ لارۍ یې له منځه یوړې په یوبل رپوټ کښې راغلي دي چې مجاهدینو خوست ته نژدې چې د کابل د حکومت په لاس کښې دي دوه پوځي هلیکوپټرونه راغورځولي چې شپږ تنه عمله یې وژل شوې ده. همدا راز کندهار د مجا–هدینو او شورویانو د سختو جګړو ډګر ګرځیدلی او مجاهدین د ښار ځینې برخې پخپل کنترول کښې لري. ( د امریکا غږ– دری )

۵۲– ببرک کارمل د کمونست ګوند د مرکزي کمیټې د سیاسي بیرو په غونډه کښې برخه واخیسته او د رژیم د وسله والو قواوو د تدارکاتي معیارونو په ښه والي او عسکري صلاحیتونو په لوړوالي باندې یې ټاکید وکړ. ( د کابل راډیو )

## ۱۵

۵۳– د بشر د حقوقو متخصص فلکس آرماکورا په هغه نوي رپوټ کښې چې د ملګرو ملتو د بشر د

